بسم الله الرحمن الرحیم

# د لنډې کیسې کرکټرونه په کوم ډول باید انځور کړو؟

لیکوال: استاد نوراحمد قران مل

موضوع : لیکوالي

د گروپ قدرمنو غړو اسلام علیکم ورحمةالله وبرکاته!

هیله ده چې روغ اوجوړ یاســـت د ژوند چارې مو پخیر وي ســـتړیاوې او کارونه مو منظم وي د گروپ محترم مدیر صاحب پوښتنه کړې ده (......)کرکټرونه په کوم ډول باید انځور کړو؟

کله چې غواړو یو لنډه کیسه نوشته (ولیکو) کړو نوپه هغه کې څو مسایل مد نظر ونیسو:

۱: د کیســې مفهوم او دکیســې انعکاس په ټولنه کې او د معاصرې ټولنې د کلتور او فرهنگ د ژړيي چوکاټ کې

۲:د ژانر تر څنک چې موږ د کیســې په ژانرکې تطبیقوو که هیرو یا لوبغاړی تطبیقوو حتماً باید د لوبغاړي پر محور باندې هغه ټول مسایل او موارد چې راگرځي هغه باید یو نوع د انواعو څخه د لوبغاړي سره اړیکه ولري او د( لوبغاړي )سره باید تړلې وي.

خپله د کیسې لوبغاړی باید د کیسې د ټولو افاقو سره تړلی و اوسیږي په کیسه که هر پدیده رامنځته کیږی دا که په تراژیدي برخه کي وي نو موږ باید هماغه تراژیدي پیښــې لپار باید تراژیدی انځورله ځان سره ولرو که داسي وي چې موږ د یو تراژیدي کیسې یا یو غمیزي کیسې لپاره د خوښــی انځور له ځان سره ولرو نو په دې صــورت کی متناســبوالې ته کتل کیږي که همدغه تصویر( انځور)چې موږ په ښکلي انداز کې په تراژیدي کیسې کې وړاندې کړی وو او د کیسې سره یی ربط درلودی فرض مثال ( ترخه مُسکا، په ژړا کې خندا )چې د کیسې هیروسره یی تړاو درلودی یا هم د کیســې د مضــون سره یی تړاو درلودی نو بیا دا تصــویر( انځور) د پاراډاکس حیثیت پیدا کوي او که دا سې وي چې موږ هغه کیسه وی چې تراژیدي کیسه وي په هغه کې داســې خنداوره (خندونکي) څه وي چې هغه دې سره نه منطقي ربط ولري او نه

مناسب وي په دې صورت کې زموږ د کیسې بڼه او (....) پر بله خوا بیایی بناً کله چې موږ په کیسه کې کوم کرکټر تطبیقوو د کرکټر د ټولو ابعادو لپاره باید داسې انځورونه پکار واچو چې هم لفظاً(لفظي)او هم د کرکټر د حرکت او (موټویټ) د انسان و ذهن ته راسي په دغو دوارو مواردو کې چې د کیسې سره لفظي انځور موجود وي او انځورګر داسې انځور وړاندې کړي چې هغه هیرو خپله هم لوبغاړي او دلوبغاړي نقش هم په کیسه کې ثابت وي او د نقش ثبوت د لوبغاړي په حرکت کې راغلی وي او دا هغه تر ټولو ښه کرکټردی چې موږ یی تطبیقوو.

درنښت

۱۸قوس ۱۴۰۳ لمریز کال